له ډیرو غربپالو په مو اورېدلي وي چې وايي يوازې انسانيت ته ژمن دی ، خو له دوی و پوښتئ چې د چا انسانيت؟

**د اروپايانو انسانيت؟**

- هغه چې د امريکا تر کشف وروسته يې ۱۰۰ ميليونه د امريکا اصلي اوسيدونکي سور پوستان ( سره هنديان ) قتل او د هغوی مالونه يې غصب کړل. اروپايانو به د سرو هندوانو پر سيمو حملې کولې، لومړی به يې د هغوی کښتونه له منځه وړل او وروسته به يې چې هر څوک خپل مقابل ګانه واژه به يې. د هر سره هندي د سر د پوست په تراشلو او د هغوی د ښځو او ماشومانو په مثله کولو مسابقې او جايزې وټاکل شوې. وروسته يې سورپوستانو ته داسې جامې او څادرونه ورکړل چې په زهري کيمياوي موادو به لړل شوي وې، دې زهري موادو په سورپوستانو کې طاعوني امراض راپيدا کړل چې په ډير تعداد سورپوستي يې له منځه يووړل.

دا قتل عام د ۱٦ ميلادي پيړی په کال ۱٦٦۲ م کې په جيمزټاون ښار کې لومړی ځل د هسپانويانو لخوا پيل شو او وروسته د امريکا د وچې د نورو مناطقو د نيولو په منظور د انګريزانو ، فرانسويانو او پرتګاليانو لخوا ترسره شو. دې حملو تر ۱۹۰۰م کال پورې دوام وکړ چې شاوخوا ۱۰۰ ميليونه سورپوستان پکې ووژل شول. لومړني رئيس جمهور( جورج واشنګټن ) په پنځو کلونو کې د سرو هندوانو د ۳۰ سيمو څخه ۲۸ يې په مکمل ډول له منځه يووړې.

- يا د هغو اروپايانو انسانيت چې نازي هټلر يې يوازې د ګوتو په شمار کلونو په جريان کې د هولوکاسټ (Holocaust ) يا پوره سوځوني په وسيله ۱۱ ميليونه



انسانان قتل کړل. نازیانو دا کسان په مرمیو وژل، خو وروسته یې دا وژني په کاربن مونو اکساید (CO) ګازونو، لوږي، سوځولو او نورو پرمختللو وحشتناکو طریقو ترسره کولې.

- یا د هغو فرانسوي اروپایانو انسانیت چې ناپلیون یې د واک د پراخولو لپاره په ناپیلیوني جګړو کې شپږ نیم میلیونه انسانان ووژل او اروپا د ډیر ښارونه یې وران کړل.

- یا د هغو اروپایانو انسانیت چې په رومي امپراطورۍ کې یې د زندانیانو آزادي یوازې د ګلادیاتوري ( Gladiatorial) وحشتناکو جنګونو له لارې وه او هغه داسي چې دوه انسانان یا یو انسان او وحشي حیوان ( زمری، سپی یا لیوه ) به یې په یوه میدان کې سره پرېښودل، د لوړ پوړو حکومتي اشخاصو په شمول به د سیمي ټول خلک پرې راټول وه، دوی به جنګ شروع کړ، ټولو به لیدل چې یو انسان بل په وحشتناکه توګه وژني یا وحشي حیوان د ژوندي انسان د بدن اعضاوي شکوي او پرې کوي او دوی به ترې خوند اخیست، که به له دې لوبي انسان ژوندی پاته شو نو به یې آزاد کړ.

**که په اروپایانو کې د انګریزانو انسانیت؟**

- هغه انګریزان چې پر افغانستان یې له زرګونو کیلو متره لیري څځه درې ځله یرغل کړی دی، پر داسي یوه قوم یرغل چې د یوې ټوټې وچې ډوډۍ په پیدا کولو پسې ستړي ستومانه ول. دلته یې په زرګونو افغانان ووژل، اولادونه یې یتیمان او ښځې یې کونډې کړې.



- یا هغو انګریزانو انسانیت چې ددوی له وجې د هند تر اشغال وروسته په ۱۷۷۰مه م لسیزه کې یوازي د بنګال ( اوسني بنګلديش ) په ايالت کې ۱۰ میلیونه هندوانو د لوږي، قحطۍ، مریضۍ، د انګریزانو د بد سلوکۍ او شکنجې او یا د اجباري کار د فشار له وجې خپل ژوند له لاسه ورکړ. په دويم ځل په کال ۱۹۴۲ کې یو ځل بیا د انګریزانو خصوصا د هغه وخت د بریتانیا د صدر اعظم وینسټن چرچیل د استعماري تصامیمو له وجې په هند کې قحطي پیل شوه چې شاوخوا ۵ میلیونه نور هندوان يې د مرګ کومي ته کړل.

- یا هغو انګریزانو انسانیت چې د جنوبي افریقا د بویر (Boer) په جنګونو کې یوازي د داخلي قیامونو د احتمالي خطراتو له امله د اجباري کار په قرارګاوو کې په زرګونو انسانان زنداني کړل چې یوازي د یوه کال په جریان کې د لوږي او مریضۍ له وجې شاوخوا ۱۰ زره کسان په دې قرارګاوو کې مړه شول او دا ټول ددې لپاره چې برتانیا په جنوبي افریقا کې خپلو استعماري اهدافو ته ورسیږي. د بویر په جنګونو کې مجموعا ۳۰ زره انسانان مړه شول او انګریزانو د جنوبي افریقا د مهاړولو لپاره ددې ۳۰ زره مړو علاوه د ماشومانو او ښځو په شمول ۴۸ زره غیر نظامي کسان ووژل.

- یا هغو انګریزانو انسانیت چې په ایران کې يې د دوو کالو (۱۹۱۷م – ۱۹۱۹م ) په جریان کې د ایرانیانو نسل وژنه ( Genocide ) رامنځته کړه او شاوخوا ۹ میلیونه ایرانیان يې ووژل چې دې اندازې د ایران د هغه وخت د ټول نفوس ۴۰ مه برخه جوړول. د امریکا د خارجه چارو د وزارت د اسنادو پر اساس په ۱۹۱۴م کې د ایران



نفوس ۲۰ میلیونه تنه وو خو دا اندازه په کال ۱۹۱۹م کې ۱۱ میلیونه تنه ته راکښته شوه.

**که د امریکایانو انسانیت؟**

- هغه چې د جاپان پر هیروشیما او ناګاساکي پر ښارونو يې اټومي بمونه وغورځول او له امله يې د ښځو او ماشومانو په شمول شاوخوا دوه لکه شل زره بې ګناه انسانان قتل کړل او په زرګونو نور انسان په هماغه سیمو کې ددې دوو بمونو له خطرناکو صحي تاثیراتو وکړېدل. د امریکایانو دا جنایت ښايي د امریکا په تاریخ کې يو له تر ټولو سترو جنایتونو څخه وي.

- یا د هغو امریکایانو انسانیت چې په ویټنام کې د ۱٦ کلونو په جریان کې د ښځو او ماشومانو په شمول شاوخوا درې میلیونه انسانان قتل کړل، پر ویټنام باندې د امریکایانو تر یرغل وروسته نه یوازې دا چې په دومره لویه اندازه انسانان ووژل بلکې د ښارونو، کلیو، کښت او کروندې له تباهۍ نیولې ، پر ژوندیو انسانانو د کیمیاوي موادو تر استعمال، د انسانانو د بدن او اعضاوو تر پرې کولو او پر ویټنامي ښځو تر جنسي تیري پورې ډول ډول جنایات ترسره کړل.

- یا د هغو امریکایانو انسانیت چې په دویم نړیوال جنګ کې د آلمان ( جرمني ) کې يې پر آلماني زندانیانو او هغو سیمو پر غیر نظامي اوسېدونکو باندې په مستقیم او غیر مستقیم ډول غذایي مواد بند کړل او له امله يې په زرګونو آلمانیان له لوږې مړه شول.



- يا د هغو امريکايانو انسانيت چې پر عراق تر يرغل وروسته يې يونيم ميليون انسانان ووژل. پر ښځو او ماشومانو تجاوز، له کيمياوي اسلحو استفاده، د ځوانانو او د امريکا د يرغل مخالفينو وژل، د زده کړو او پرمختيايي مراکزو تخريب او له منځه وړل، د بې گناه انسانانو بې دليله وژل، د خلکو د مالونو چور کول او د کښتونو او کروندو ويجاړول په عراق کې د امريکايانو د جناياتو يوه برخه ده.

- يا هغو امريکايانو انسانيت چې پر کمزوري افغانستان يې ټوله نړۍ راکوټه کړه، دلته يې په B-52 ډوله تيارو، کروز توغندويو او نورو وژونکو اسلحو په زرگونو انسانان قتل کړل، په زرگونو نور يې زخميان، بې کوره او بې سرپرسته کړل. هغه امريکايان چې له واړه بم څخه نيولې تر مور بمه ټول پر دې خاورې و آزمايل.  که څوک په افغانستان او عراق کې د امريکا د وحشت اصلي څېره ووينې، انسانيت ته به يې لاړې ور تف کړي.

- که هغو امريکايانو انسانيت چې په نړۍ کې د ډيرو بې نظميو او گډوډيو اصلي سرچينه ده. د يوه راپور په اساس امريکا يوازي د شلمي پيړۍ په دويمه نيمايي کې شاوخوا ۱۰۰ نظامي کودتاوي او د حکومتونو راپرځول رهبري کړي دي،  په لسگونو واره يې په مستقيمه توگه د هيوادونو په اشغال لاس پوري کړی دی او يا يې هغوی په نظامي مداخلې تهديد کړي دي.

- که هغو امريکايانو انسانيت چې په زرگونو انسانان يې بغير له محکمې پخپلو وحشي زندانونو کې ساتلي او څوک حتی د خپل حق او آزادۍ څخه د دفاع لپاره د وکيل ټاکلو اجازه هم نه لري چې ښه مثالونه يې د گوانتانامو، ابوغريب او کندهار



وحشي زندانونه دي. په دې زندانونو کې امریکایانو د وحشت ریکارډونه مات کړل، داسي وحشتونه چې څوک یې حتی د پوره ویلو تاب نه لري.

**که د روسانو انسانیت؟**

- هغه روسان چې ستالین یې تر هلتر هم په وحشت کې څوک قدمه مخکې وو او شاوخوا ۲۰ میلیونه انسانان یې په اعدام، لوږه، سخت کار او یخنۍ سره ووژل. جوزف ستالین د شوروي د کمونستی نظام دیکتاتور رهبر وو چې خپل ټول مخالفین یې یا قتل، یا تبعید او یا د اجباري کار قرارګاوو ته لیږل تر دې چې ښځې یې دده د جنایاتو د اورېدو تاب رانه وړ ، لومړی په رواني تکلیف اخته شوه او وروسته یې ځان وژنه یې وکړه. ستالین خپل رقیب او د لینن خاص شاګرد لییون تروتسکي له منځه یووړ او حاکمیت یې ترلاسه کړ، وروسته یې د شوروي د ټولو ځمکو د کنترول لپاره د ګولاګ (Gulag) په نوم اداره رامنځته کړه ، دې ادارې د ستالین سیاسي محکومین او مخالفین د سایبریا یخو سیمو ته د اجباري کار قرارګاوو ته لیږل چې په دې ډول په زرګونو انسانان د سخت کار، یخنۍ او قصدي لوږي له امله ووژل شول. همدارنګه د ستالین د کښتونو او حاصلاتو د اشتراکسازۍ سیاست په ټول شوروي کې د قحطۍ یو توفان راویست چې پکې میلیونونو انسانانو خپل ژوند له لاسه ورکړ.

- که هغو روسانو انسانیت چې په افغانستان کې یې د کمونیزم د حاکمیت پر مهال شاوخوا دوه نیم میلیونه افغانان ووژل، یو میلیون یې معیوب او څلور نیم میلیونه



يې هجرت ته مجبور کړل، د هيواد ډيري بستيزي پروژې پکې له منځه ولاړې، هيواد په کنډواله بدل شو او يوه بل اشغال ته يې لاره هوراه کړه.

**که د چينايانو انسانيت؟**

- هغه چې د مائو ( ماتوسي تونگ ) بدمرغو سياستونو او شکنجو يې يوازي په ځلورو کلونو ( ۱۹۵۸-۱۹٦۲ م ) کې ۴۵ ميليونه کسان له لوږي ووژل. لوږه تر دې حده ورسېدل يوه هلک يوه اندازه غله غلا کړې وه، د محلي حاکم د هلک پلار اړ کړ چې خپل زوی ژوندی تر خاورو لاندې کړي چې وروسته يې پلار هم د همدې درد او عصبي تکليفه مړ شو. دا د تاريخ تر ټولو وحشتناکه انسان بلل کيږي چې په ډير کم وخت کې يې له وجي په يو پرنفوسه هيواد کې په دومره اندازه انسانان خپل ژوند له لاسه ورکوي.

★ که د يهودو انسانيت چې په فلسطين کې د ځلورو پيړيو راهيسي مظلوم مسلمانان وژل کيږي، زنداني کيږي او ځمکي تري غصبيږي.

★ که د برما ( ميانمار ) د بودايانو انسانيت چې د برما اقليت مسلمانان په دومره وحشت شهيدانوي چې سترگي يې د ليدلو قابلې نه دي. له ژوندي په اور سېځلو رانيولې تر ژوندي ټوټه کولو او سختو شکنجو او زنداني کولو پوري په ډول ډول وحشتونو د هغه ځای لړکي مسلمانان وژل کيږي په داسي حال کې چې نه يې غربي رسنۍ په اړه څه وايي او نه پردي پال مسلمان حاکمان.



★ او که د هغو کسانو انسانیت چې په دویم نړیوال جنګ کې یې یوازې په څلورو کلونو کې ۲۷ میلیونه کسان ووژل، یعني په هره ورځ کې ۱۷ زره کسان. ددې تلفاتو ۵۰ سلنه د عامو خلکو وه چې په جنګ کې هیڅ ډول شریک نه وه.

حقیقت دادی چې د انسانیت په نوم د هیومنزم (Humanism) الحادي نظریه اصل کې د دین سره د ضد پر بنیاد رامنځته شوې چې وایي دین د انسان شخصي عمل دی، موږ باید د انسانانو په حیث داسي ژوند وکړو چې د مسلمان، یهودي، نصراني او نور اصطلاحات مو تر مینځ نه وي. دا خبره د اسلام له بنیاد سره په ټکر کې ده، که موږ د انسانیت په نوم سره راټولېدلای او ترمنیځ مو کافر او مسلمان خبره نه وای، د مجرم او غیر مجرم تر مینځ توپیره نه وای نو دا په زرګونو پیغمبرانو ته څه ضرورت وو؟ الله تعالی ولي په لسګونو کتابونه او صحیفې رانازلولې؟ بیا د حق او باطل کلمه څه معنی لري؟

الله تعالی په زرګونو پیغمبران او په لسګونو کتابونه او صحیفې ځکه نازل کړي چې د کافر او مسلمان فرق وشي، د هغه کس چې الله تعالی په خدایۍ مني، پر ملائکو، کتابونو، پیغمبرانو او آخرت په ورځ ایمان لري  او دهغه چا تر مینځ توپیر وشي چې په دې یوه هم باور نه لري، دې ټولو ته زړې فلسفې وایي، انسان د آدم علیه السلام اولاد نه بلکي د بیزو له نسله ګڼي، انسان د شنه بوټي په شان ګڼي چې که مړ شي ټوله کیسه یې ختمه شوه، نه حساب شته نه کتاب.

د انسانیت په نوم د هیومنزم (Humanism) نظریه کاملا الحادي نظریه ده چې نه پر خدای باور لري، نه پر دین او پیغمبر. غرب او په ټوله کې کافران د اسلام او



مسلمانانو تر مینځ د ټینګو اړیکو په سستولو لګیا دي، ځکه همدا اړیکه ددوی د غربي او استعماري اهدافو مخه نیولې او همدا اړیکه ددوی غربي فلسفه ننګوي.

الله تعالی د اسلام په دین کې د هر چا حقوق او احکام ټاکلي دي. د هغه کافر لپاره هم احکام شته چې په اسلامي خاوره کې بې ضرره ژوند کوي، نه د چا ژوند ته لاس اوږدوي، نه د چا ناموس او مال ته. اسلامي نظام به دداسي کافرانو امنیت تضمینوي، د هغوی د سر، مال او ناموس ساتنه به کوي. خو د هغو کافرانو لپاره هم احکام شته چې زموږ پر دین، خاوره، مال او ناموس تجاوز کوي، دلته له توپ او ټانګ سره پر موږ خپل فرعونیت ترسره کوي، دداسي کافرانو په وړاندي الله تعالی هر مسلمان مکلف کړی چې د خپل دین، خاوري، ناموس او مال څخه د دفاع په خاطر له دوی سره جهاد وکړي، لاسونه یې ور لنډ کړي او له خپلې خاورې یې وشړي.



پای

